## اونئيز درسونه او مضمونونه:

هره ورځ ٥ درسي ساعتونه وي چې هر ساعت ٤٥ دقيقې وي.

### هفته وار درسي وختونه

| مضمون | صنف اول | صنف دوم – سوم | صنف ٤ – ٦ |
|---|---|---|---|
| تعليم القرآن | ٦ | – | – |
| فقه و عقايد (دينيات) | ٦ | ٦ | ٤ |
| حساب (رياضي) | ٦ | ٦ | ٦ |
| قرآن كريم | – | ٦ | ٤ |
| لسان اول (پښتو يا دري) | ٧ | ٩ | ٤ |
| لسان دوم (دري يا پښتو) | – | – | ٣ |
| خط | ١ | ١ | ١ |
| رسم | ١ | ١ | ١ |
| سپورت | ١ | ١ | ١ |
| جغرافيه | – | – | ٢ |
| تاريخ | – | – | ٢ |
| ساينس | – | – | ٢ |
| د هفته وار درسي ساعتونو مجموعه | ٢٨ | ٣٠ | ٣٠ |

## ازموينه:

دګرمسيرو ښوونځيو لوړې ازموينه د جنورې په مياشت کې او

دسردسیرو ښوونځیو د جون په میاشت کی اخیستله کیږی او ۳ – ۸ ورځی دوام کوي. تر لومړی ازموینی وروسته لس (۱۰) ورځی عمومي رخصتی وي.

دګر مسیرو ښوونځیوکلنی ازموینه د می په میاشت کی او د سردسیرو ښوونځیو د نومبر په میاشت کی اخیستله کیږی او ۳ – ۸ ورځی دوام کوي. تر کلنی ازموینی وروسته دری میاشتی عمومی رخصتی وي. ددی لپاره چی زده کوونکی په کلنی ازموینه کی بریالی شي باید په هر مضمون کی لږ ترلږه ۳،۵ ( یا ۳۵) نمری واخلي او د نمرو اوسط ئی ۵ (یا ۵۰) وي. (په هر مضمون کی لوړه نمره ۱۰ یا ۱۰۰ ده).

هغه شاګرد چی د نمرو اوسط ئی پوره کړی خو په یو یا دوه مضمونونو کی ئی د ۳،۵ (یا ۳۵) نمرو څخه لږی نمری اخیستی وی، مشروط ګڼل شوی او حق لری چی د نوي تعلیمی کال د پیل کیدو څخه د مخه په هغو مضامینو کي بیا امتحان ورکړي چی پکی ناکام شوی دی.

هغو زده کوونکو ته خاصه توجه کیدای شی چی په لومړی ازموینه کی په ښه توګه بریالی شوی خو په کلنی ازموینه کی د لږو غلطیو له امله ناکام پاتی وي.

همدا راز هغه زده کوونکي چی په ټولو مضونونو کی ئی د ټیټ حد نمری یعنی ۳،۵ (یا ۳۵) اخیستی خو د نمرو اوسط یعنی ۵ (یا ۵۰) ئي نه وی پوره کړی، یا ئی په دریو مضمونونو کی د ۳٤ (یا ۳۵).

د ښوونکو مجلس کولای شي چې ددغه راز شاګردانو په برخه کې فیصله وکړی چې بریالي وشمیرل شي، امتحان ئی بیا واخیستل شی او یا ناکام پاتې شوي او پخوانی ټولګی بیاتکرار کړی.

## د مکتب د اکمال لغو کول:

هرکله چې ښوونځی په قناعت بخښونکي توګه فعال نه وي نو د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه حق لري چې د مکتب اکمال لغو کړی. دا حالت هغه وخت وي چې د یومیه حاضرو شاګردانو شمیر په هر ټولګی کی تر (۱۰) تنو لږ وي، کله چې ښوونکي غیر حاضر وي او یا په بل عبارت سر غړونه کوي، یا ښوونځی پوره یو تعلیمی کال (۹ میاشتی) نه چلیږی.

هر کله چې ښوونځی په سیمه کی د نا امنی یا نوروغیر عادي شرایطو په نسبت د مجبوریت له امله تړل شوي او تدریس نشي کیدای، د دا رنګه ښوونځیو ښوونکو ته د مکتب مؤقتی تړل کیدو په نسبت تر دوه میاشتو پوری معاش ورکول کیږي.

همدا راز د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه حق لری چې یو تربله سره نژدی ښوونځی مدغم کړی یا ښوونځی د جنګ له وخت څخه پخوانیو موقعیتونو ته انتقال کړی.

کیدای شي چې د بودجې محدودیتونه هم د ښوونځیو د اکمال د لغو کولو سبب شي.

## د ښوونکو د روزنې پروګرام:

هدف: د ښوونکو د روزنې د پروګرام هدف دادی چې د زده کړې نتیجه ښه شي او د تدریس حالت او دغه راز د سرښوونکو په اداري استعداد او لیاقت کې ښه والی راشي.

د ښوونکو کورسونه: پخوا تردې چې ښوونکي په کورس کې شامل شي د هغوی ضرورتونه د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې د ښوونځیو د مشاورینو لخوا ارزیابي شوي او د هغې د نتایجو سره سم په کورسونو کې د ګډون کولو لپاره انتخابیږي. د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه د عمومي رخصتیو په وختونو کې دوه میاشتني کورسونه د ښوونکو د روزنې د مرکزونو څخه په یو مرکز کې او د مکتب په داخل کې کورسونو په نامه کورسونه د ۲-۳ اونیو لپاره په ساحه کې دایروي، هر کال د ۵۰۰ ښوونکو په شاوخوا کې په دوه میاشتینو او د ۱۰۰۰ ښوونکو په شاوخوا کې د مکتب په داخل کې کور سونوکې روزل کیږي (دا د هغو ۱۸ ولایتونو لپاره ټول شمیر دی چې د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه پکې فعالیت کوي).

## د سر ښوونکو کورسونه:

د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه سرښوونکي هم روزي. د کورس

لومړۍ برخه دښوونځی د اداری چارو په هکله ده چی ۱۰ ورځی دوام کوي او دویمه برخه ئی د معلومات د تازه کولو لپاره یو تکراري کورس دی چی ٥ ورځی دوام کوي. هر کال د ۱۰۰ تنو سر ښوونکو په شاو خوا کی (په هغو ۱۸ ولایتونو کي چی د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه پکی فعالیت لري) روزل کیږی.

## تصدیق:

هغه ښوونکي او سرښوونکی چی د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټی په تربیوی کورسونو کی ګډون کوي د کورس تربشپړولو وروسته تصدیق اخلي.

## د نورو ښوونځیو ښوونکي:

د ښوونکو او سرښوونکو د کورسونو ګډون کوونکی کیداي شي په زیات شمیر سره په سلو کی تر ۲۰ دهغو ښوونځیو ښوونکي اوسي چی د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټی لخوا نهٔ آکمالیږی. د ښوونکي او سرښوونکي هم په کورس کی تر شاملولو د مخه د افغانستان لپاره د سوید د کمیټی د ښوونځیو د مشاورینو لخوا ارزیابی شوي او انتخابیږی.

## د ښوونځیو کتل:

هدف: هدف دا دی چې تعلیمي فعالیتونه د ښوونې او روزنې د پروګرام دبنه کولو په منظور ارزیابي شوي او د ښوونځي د چارو په اړوند ښوونکو، سرښوونکو او ټولنې ته مشوره ورکول شوی او مرسته ورسره کیږی. دا هم هدف دی چې ډاډ ترلاسه شي چې تعلیمي فعالیتونه د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې د پلانونو سره سم، د مرستو د پالیسی سره سم او د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې د ښوونې او روزنې د دستور العملونو سره سم پرمخ وړل کیږی.

## د معلوماتو ډولونه (څرنګوالی):

د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې مشاوران له ښوونځیو څخه په منظم ډول کتنه کوی. د کتنې په ترځ کې به دوی په لاندې برخو کې معلومات را غونډوی:

د زده کونکو او ښوونکو شمیر، د ښوونځیو د زده کونکو او کارمندانو حاضری، د درسی موادو ویش، اداری چاری، د خلکو برخه اخیستنه او د ښوونځیو د ودانولو او تر میمولو ضرورت.

د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې مشاوران دنده لري چې د ښوونځیو د کتنې په ترځ کې چې د یوه تعلیمي کال په اوږدو کې له ٤ تر ٦

څلو پوری سرته رسیږی اړوند معلومات را غونډه کړی را غونډه و شوو معلوماتو ته به سمه بڼه ورکول کیږی او برسیره پردی چی په نورو برخو کی به ترینه کار اخیستل کیږی دهغو کلنیو را پورنو په برابرولو کی به هم ترینه کار اخیستل کیږی کوم چی د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه ئی مرستندویه (Donors) مقاماتو ته وړاندی کوي.

## د ښوونځیو ودانول او ترمیمول:

### هدف:

هدف دا دی چی په افغانستان کی د لومړنیو ښوونځیو د تعمیرونو د بیا ودانولو په پروسه کی په ګډه سره فعالیت سرته ورسیږی او د تدریس او زده کړي لپاره یو مناسب چاپیریال را منځ ته شي.

د ۱۹۹۸ او ۱۹۹۲ کلونو ترمنځ د سویډن کمیټی په افغانستان کی ۱٤۰ ښوونځي جوړ کړی دي. پدی حساب په منځنی توګه په هر کال کی له ۱۰ څخه ۲۰ پوری ښوونځی د بودجی د موجودیت په صورت کی جوړ شوی دي. د ښوونځی د جوړولو (ودانولو) لپاره لاندی اساسات په نظر کی نیول کیږی.

- د محل خلک باید کم له کمه په سلو کی شل (۲۰ %) مصرف په غاړه واخلی.
- د نجونو دښوونځیو جوړولو ته د لومړیتوب حق ورکول کیږی.

– ښوونځی باید له جنګ څخه دمخه موقعیت کی جوړ شی (د نجونو ښوونځی استثنا دی).
– وروسته پاتی سیمی د لومړیتوب حق لري.

## حقونه او مسئولیتونه (وظیفی):

په افغانستان کی په ډیرو کلیوالی سیموکی د تعلیم او تربیی نورمال شکل وجود نلری او د کلیو ماشومان اکثراً ښوونځی ته له تلو څخه محروم پاتی کیږی. مګر په اوس وخت کی اکثر خلک پدی پوهیږی چی ښوونه او روزنه دیوه هیواد د ودی (انکشاف) لپاره ضروری ګڼل کیږی.

هغه محلی خلک چی د ښووني او روزنی پرمختیا سره علاقه لری یا میندی او پلرونه دی ته هڅوی چی خپل ماشومان ښوونځی ته واستوی یادښوونځی په چاروکی برخه اخلی. پدی معنی چی د خپل ښوونځی لپاره مسؤلیت په غاړه اخلی. نو په ریښتیا سره به هم دوی په مجموع کی د خپلی تولنی لپاره یوه نیکمرغه پرمختیا منځ ته راوړی.

محلی کمیتی د ښوونځی د سرښوونکي او ښوونکو په فعال ساتلو کی لوی رول لوبولی شی.

## حقونه (حقوق):

☆ محلی خلک کولای شی چی د افغانستان لپاره دسویډن د کمیتی

له کارکونکو سره په هغه وخت کی چی له ښوونځیو څخه لیدنه کوی وکوری (ملاقات ورسره وکړی).

☆ د کلیو خلک حق لری چی د سویه‌ن د کمیټی د ښوونځیو له مشاورانو سره خبری وکړی او هغه تعلیمی مسئلی ورسره مطرح کړی کومی چی دوی په فکر مهمی دي.

☆ د هر هغه محل خلک چی د سویه‌ن کمیټه د هغوی یو ښوونځی فعالوی دا حق لری چی خپل نظریات او یاشکایتونه د سویه‌ن د کمیټی د تعلیم او تربی مدیر، د سویه‌ن د کمیټی ساحوی رئیس یا په آخر کی د افغانستان لپاره دسویه‌ن د کمیټی عمومی رئیس ته وړاندی کړی.

☆ د محلونو (کلیو) خلک کولای شي چی د ښوونکو/سرښوونکی په باب خپل نظر وړاندی کړی، خو د افغانستان لپارهٔ د سویه‌ن کمیټه دا حق ځان ته محفوظ ساتی ترڅو د هغوی په باب مناسبه ارزیابی سرته ورسوی.

☆ د محل خلک حق لری ترڅو ملازمین (ساتونکی) مقرر کړی (ددغو ساتونکو له ډلی څخه یو تن د سویه‌ن له کمیټی څخه معاش اخلی)

## وظیفی (مکلفیتونه):

☆ د ښوونځی د تعمیر ساتنه د محل د خلکو په غاړه ده او د شپی له خوا څوکیدار ته دوی معاش ورکوی.

☆ د محل خلک باید (شل به سلو کی %۲۰) د ښوونځی د جوړولو مصارف په غاړه واخلی.

☆ د محل خلک د وړو ترمیماتو او ساتنی مسئولیت په غاړه اخلی.

☆ د محل خلک مسئولیت لري چې د ضرورت په وخت کی د افغانستان لپاره د سویدن د کمیټی کار کوونکو ته د اوسیدلو (رهایش) ځای پیدا کړی.

## زده کونکی:

ټول زده کونکی باید د ښوونځی د ښوونکو او کارکونکی په وړاندی احترامانه حرکت وکړی. دوی باید د خپلو میندو او پلرونو، د کورنۍ د غړو او ټولني له غړو سره نیک او مؤدبانه سلوک ولری.

دوی باید د کلیو سپین ږیرو او لویانو درناوی وکړي او همدارنګه له خپلو همصنفانو سره دوستی او همکاري ولري.

## حقونه (حقوق):

☆ دیوه کلی یا محل ټول هغه ماشومان چې عمر یې اوو کلونوته رسیدلی او ښوونځی ته تلای شي، بی لدي چې ددوی ژبه، نژاد، مذهب یا جنس په نظر کی ونیول شی په ښوونځی کی د شمولیت حق لری.

☆ زده کونکی حق لری چې بی له حق الزحمی په ښوونځی کی درس ولولی.

د افغانستان لپاره دسویډن کمیټې د ۱۹۸٤ میلادی کال راهیسی د مجاهدینو لخوا په آزادو شوو سیمو کی د تعلیمی فعالیتونو آکمال پیل کړی دی. ویل کیدای شی چی په هغه وخت کی دغه آکمال په عاجل او سملاسی توګه ؤ چی یوا ځینی هدف تری دښوونځیو فعال ساتل او د ښوونی او روزنی دله منځه نګ مخنیوی ؤ. د روسی قواو تر وتلو وروسته دښوونځیو آکمال دحجم او محتوی له حیثه زیاتوالی وموند او ورو ورو په پرمختیائی آکمال بدل شو. د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه د لومړنیو تعلیماتو په بیارغونه او سرله نوی نه چلولو کی مرسته کوي، او پټیلی ئی ده چی داسی یوه کیفیت لرونکی ښوونه او روزنه رامنځته کړی چی د بین المللی معیارونو سره سمون ولري او د افغاني تولنی د لګښتونو او معیارونو سره برابره وی.

د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه دا غوره ګنی چی د افغانانو ښوونځي د افغانی کلتور او اسلامی ارزښتونو په پام کی لرلو سره آکمال کړي. دغه کار د ښوونکو په روزنه او همدا راز د هغو تعلیمي موادو په تیارولو کی انعکاس موندلی دی چی ښوونځیوته توزیع شویدی. د ښوونکو روزني او دغه راز د درسی کتابونو تولید د افغان تکړه کارمندانو لخوا ښه غوره کړی او د ملی تعلیمی نصاب او حکومتی اصولو پیروی کوی. د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه د ۵۵۰ په خواو شا کی لومړني

☆ هر یو ماشوم حق لری ترڅو د لومړنۍ ښوونځی زده کړی په مکمله توګه سرته ورسوی.

☆ هر یو ماشوم حق لری ترڅو په دری یا پښتو ژبه درسی مواد ترلاسه کړی.

☆ هر یو ماشوم حق لري ترڅو د مشفقو اولایقو ښوونکو له خوا ورته درس ورکړ شی.

## وظیفی (مکلفیتونه):

☆ هر ماشوم باید په ډیره ځیرتیا سره زیار وباسی ترڅو په ډیره سمه توګه خپلی وظیفی سرته ورسوی. نرینه او ښځینه زده کونکي باید تر سمکنه حده پوری خپلی کورنی وظیفی په سمه توګه سرته ورسوی.

☆ هر زده کونکی مکلف دی چی ورکړل شوي درسی مواد سم وساتی.

☆ هر یو زده کونکی باید پخپل وخت ښوونځی ته حاضر شی او بی له اجازی څخه له غیر حاضری څخه ډډه وکړی.

## سرښوونکي:

دا غوره ده چی سرښوونکي د ښوونکی د روزنی له موسسی، د ښوونی او روزنی، ادبیاتو یا د ساینس له فاکولتی څخه فارغ التحصیل

شوی وی او د ښوونکی او سرښوونکی تجربه ولری.

که چیری پدی صفاتو سره یو سرښوونکی موجود نه وی، نو کیدای شی هغه څوک سرښوونکی وټاکل شی چی لدی نه کښنته تحصیل ولری.

په هرحال، یواځی په استثنائی توګه هغه کسان چی تعلیمات یی د دولسم ټولګی له سویی څخه ټیټ دی د سرښوونکو په حیث قبلیږی. د سویه‌ن د کمیټی مشاوران به د سر ښوونکو داستخدام په هکله مشوره ورکوی او د هغوی کفایت او وړتوب به پرتله (ارزیابی) کوی.

د سویه‌ن دکمیټی د کارکونکو له خوا هرکال د سرښوونکی د پوهی، د هغه د تدریسی مهارتونو او اداری چارو په باب ارزیابی سرته رسیږی. کوم سرښوونکی چی په اداری چاروکی ضعیف وي یا د اداری چارو سرته رسولو استعداد نلری، باید بدل شي.

سرښوونکی یو مهم شخص دی، ځکه دی د ښوونځی مشر وي او په کلی کی د ښوونی او روزنی نمایندګی کوی. سرښوونکی باید د خپل محل یو ستایل شوی او منل شوی شخص وی او د محل د خلکو لپاره د یوه غوره مثال نمونه وی. دی باید ښوونی او روزنی ته د اسلامی ارزښتونو پربنا ښه شهرت ورکړی.

سر ښوونکی باید زیار وباسی تر څو د محل له خلکو ښوونکو او زده کوونکو سره ښه مناسبات وساتی. سرښوونکی باید په لوړه پیمانه د محل خلک و هڅوی ترڅو د ښوونځی په چارو کی برخه واخلی.

سربښوونکی باید ټول زده کوونکي و هڅوی ترڅو هغوی پخپل وخت په ښوونځي کی حاضر وی او همدارنګه د ښوونځي نظم، پاکوالي او دسپلین ته ارتقا ورکړي.

## حقونه (حقوق):

☆ سر ښوونکو حق لری ترڅو هغه د نظارت د نورمونو د نتیجو په باب کوم چی د سویلن د کمیټی د مشاورانو له خوا تکمیل شوی او همدا رنګه د کلنی ارزیابی له نتیجی څخه خبر شی.

☆ سر ښوونکی حق لری چی دسویلن د کمیټی له امکاناتو څخه د عملی زده کړی په خاطر کله چی دا کار ممکن او ضروری وی ګټه واخلی.

☆ ښوونکی حق لری ترڅو ټول هغه مواد چی په اداری او تدریسي چارو پوری اړه لری ترلاسه کړی.

☆ سرښوونکی حق لری چی د ښوونکی د تقرر او عزل په باب نظر ورکړی.

☆ د سرښوونکی د معاش ورکړه د سویلن د کمیټی د دریمی درجی یا سطحی په اندول سر ته رسیږی او دا معاش په هرو دریو میاشتو او د عمومی رخصتی په وختونو کی هم ورکول کیږی.

☆ سر ښوونکی حق لری ترڅو خپل نظر یا شکایت د سویلن د کمیټی (SCA) د ښوونی او روزنی مدیر، (SCA) د ساحوی دفتر رئیس یا د (SCA) عمومی رئیس ته وړاندی کړی.

## وظیفې (مکلفیتونه):

☆ سر ښوونکي باید ښوونکي حمایه کړي او ښوونکو ته مشوره اولار ښوونه وکړي او همدارنګه د زده کړې یوه عالي تدریسي شکل او سمې نتیجې ته ارتقا ورکړي.

☆ سرښوونکي مکلفیت لري ترڅو د ورسپارل شوو درسي موادو سمه ساتنه او خونديتوب مراعات کړي او دا مواد په مساویانه توګه هم زده کونکو او هم ښوونکو ته وویشي.

سر ښوونکي دا وظیفه هم په غاړه لري ترڅو د درسي موادو د ویشلو کتاب په سمه توګه وساتي.

☆ سرښوونکي د ټولو زده کونکو د نومونو ثبتولو مسئولیت په غاړه لري او دا رنګه باید هغه کتاب چې پکې نومونه ثبت شوي دي په ښه توګه وساتي.

دی باید د ښوونځي د درسي کال له پیل کیدو څخه یوه سیاشت کې مخکې تیاري ولري ترڅو د راتلونکي کال لپاره ثبت نام وکړي.

☆ سر ښوونکي مکلفیت لري ترڅو هر ټولګي ته ښوونکي تعین کړي او هم د تدریسي کال په پیل کې درسي تقسیم اوقات جوړ کړي.

☆ سرښوونکي مکلف دي ترڅو د زده کونکو او ښوونکو د حاضرۍ کتابونه او ترقي تعلیمونه په سمه توګه په کار واچوي.

☆ سربنوونکی مکلف دی ترڅو ځپل اطمینان حاصل کړی چی د بنووڼځی ټول کلنی امتحانونه اخیستل شوی او نتیجی یی د افغانستان لپاره د سویدن د کمیټی مشاورانوته سپارل شوی دی.

☆ همدارنګه سربنوونکی دنده لري ترڅو هغه کتابونه چی د اداری چارو لپاره په کار اچول کیږی. لکه د اطلاعاتو کتاب، جلسو یا غونډو کتاب، د مراسلاتو کتاب او د حسابونو ساتلو کتاب او نور په سمه توګه وساتی.

☆سربنوونکی په عام ډول له ځلورم ځخه تر شپږم ټولګی پوری د تدریس چاری په غاړه اخلی.

د شاګردانو او بنوونکو دشمیر له مخی او د شفټونو او الحاقونو له نظره د سربنوونکی د درسی ساعتونو شمیر په اونی کی شپږو ځخه تر دولسو پوری د تغییر په حال کي وی.

کله چی د سویدن د کمیټی لخوا د روزنی کورسونه د ایریږی باید سربنوونکی یکی ګډون وکړي.

سربنوونکی باید د سویدن د کمیټی کارکونکو ته کله چی هغوی له بنووڼځی ځخه کتنه یا نظارت کوی د کار زمینه برابره کړی او هم که ضرورت پیبنږ شی ورته د اوسیدولو ځای برابر کړی.

سر بنوونکی باید بی له قانونی دلیله له ځپلی وظیفی ځخه غیابت ونلری. غیر قانونی غیابت دده د برطرفی سبب کیدای شی.

د سربنوونکی لپاره په اعظمی حد یعنی تر دریو ورځو پوری د ناروغی له کبله غیابت ،سره له معاشه د یوه تعلیمی کال په ترځ کی، بی له دی چي د ډاکتر تصدیق راوړل شي د قبول وړ دی. په یوه تعلیمی کال کی تر اعظمی حده یعنی تر شلو ورځو پوری د ناروغی له کبله رخصت ګڼل کیدای شی اود معاش مستحق هم ګرځی، پدی شرط چی دده ناروغتیا د یوه طبیب له خوا تصدیق شوی وي.

د ناروغی وخصتی که دوو میاشتو څخه زیاتیږی، نو بیا د سر بنوونکی د برطرفی سبب ګرځی.

د شخصي کار د اجرا کولو لپاره د تعلیمی کال په اوږدوکی تر پنځو ورځو پوری رخصت اخیستلای شی او معاش هم ورته ورکول کیږی د شخصي کار له کبله له پنځلسو ورځو څخه زیات غیابت د هغه د برطرفی علت کیدای شی.

د بنځینه سر بنوونکو لپاره ٤٠ ورځی ولادی رخصتی قانونی ګڼل کیږی.

## بنوونکی:

بنوونکی باید ترجیحاً د بنوونکی د روزنی له موسسی یا د پوهنتون او روزنی، ادبیاتو یا ساینس له پوهنځیو څخه فارغ التحصیل شوي وي. یواځي په استثنائی توګه هغه بنوونکی چی دتحصیل درجه ئی له

دولسم ټولګي څخه تېتیه وی د قبول وړ بللای کیږی د سویه‌ن د کمیټی دښوونځیو مشاوران د ښوونکو د مقررۍ په باب توصیه ورکولای شی او دهغوی وړتیا ارزیابي کولای شي.

د سویه‌ن د کمیټي د ښوونځیو مشاوران د ښوونکو ارزیابی د هغوی د تدریسی وړتیا او د درس ورکولو د مهارت په برخوکی تر سره کولای شی. یو ښوونکی چی د درس ورکولو په مهارتونو کی ضعف ولری، باید پرځای یی بل ښوک مقرر شی.

یو ښوونکی د محل د خلکو تر منځ یو مهم شخص بلل کیږی ځکه هغه په یوه کلي یا محله کی د ښوونی او روزنی نمایندګی کوي. دی باید دمحل د خلکو په منځ کی یو ستایل شوی او قبول شوی غړی وي.

هغه باید د اسلامی ارزښتونو په چوکاټ کی ښوونی او روزنی ته شهرت ورکړی او د زده کونکو لپاره باید یو غوره مثال وي.ښوونکی باید په ډیره محبت آمیزه توګه له زده کونکو سره برخورد وکړی او ټولو زده کونکو ته په یو ډول نظر ولری.

ښوونکی یا ښوونکی باید د زده کړی دیوه تشویقی محیط د پرمختیا په آړوندزیار وباسي او په دوامداره توګه د سمو تدرسی مهارتونو لاسته راوړلو لپاره په لټون کی وي.

د ښوونکی هڅه باید دا وي تر څو ټول زده کونکی د هر مضمون هدفونه په هر ټولګي کی لاسته راوړی او ټول زده کونکی تر شپږم ټولګی پوری په ښونځی کی پاتی شي.

ښوونکی باید د خپلو همکارو ښوونکو په مقابل کي دهمکاری اوګډو هځو د نظر خاوند وي. او د محل له خلکو سره ښې اړیکی وساتی.

دی یا دا باید ټول زده کونکی وهڅوی ترڅو هغوی تل د حاضری پابندی وکړی، په ښوونځی کی نظم، پاکی او دسپلین ته پر مختیا ورکړی.

## حقونه (حقوق):

ښوونکی حق لری چی د سویډن د کمیټی د مشاورانو له خوا د تدریس او ښووني او روزني په اړوند موسته (حمایت) او توصیه تر لاسه کړی.

ښوونکی حق لری ترڅو د افغانستان لپاره د سویډ د کمیټی له خوا دا امکان او ضرورت په وخت کی روزنه تر لاسه کړی.

ښوونکی حق لری ترڅو وروسته له هغه چی د روزنی په کورس کی ګډون وکړي، د سویډن د کمیټی د مشاورانو له خوا ورسره تعقیبی ملاقات سرته ورسیږی.

ښوونکی حق لری چی دهغو مشاهداتی فورمو له نتیجو کوبی چی د سویډن د کمیټی د مشاورانو له خوا خانه پوری شوی وي. او همدارنګه دکلنی ارزیابی له نتیجوڅخه ځان خبر کړی.

☆هغه ښوونکی چی د تحصیل درجه یی له دولسم ټولګی څخه لوړه وی (یا د دیني علومو معادل تحصیل ولری) هغوی د دوهمی(۲) درجی معاش د سویډن له کمیټی څخه اخلی، او هغه ښوونکی چی تحصیلات

یی له دولسم ټولګی څخه کښنته دی د اولی (۱) درجی معاش ورته ورکول کیږی د ښوونکو معاش لږ تر لږه په هرو دریو میاشتو کی د عمومی رخصتیو دورځودمعاش په شمول ورکول کیږی

☆ښوونکی حق لری چی خپل نظریات یا شکایتونه د سویه‌ن د کمیټی د ښوونی او روزنی مدیر، د سویه‌ن د کمیټی ساحوی رئیس او بالاخره د سویه‌ن د کمیټی عمومی رئیس ته وړاندي کړی.

## وظیفي (مکلفیتونه):

☆یو ښوونکی د یوی اونی په ترځ کی له ۲٤ تر ۳۰ساعتونو پوری درس ورکوی.

☆یو معلم باید مخکی له درس ورکولو مکمله آماده ګي و لری.

☆ښوونکی مکلفیت لری ترڅو د ترقی تعلیم او حاضری کتابونه په سمه توګه وساتی.

☆ښوونکی د بشپړ تعلیمی کال د آزموینو دسوالونو جوړولو او آزموینواخیستلو مکلیفت او مسؤلیت لری.

☆ښوونکی مکلفیت لري چي په هفو غو نډو(جلسو) کی ګډون وکړی جي سرښوونکی ورته رابللي وي.

☆ښوونکی مکلفیت لری ترڅو د روزنی په هغو پروګرامونو کی چی د سویه‌ن د کمیټی له خوا وړاندی‌کیږي ګډون وکړی.

☆ښوونکي باید د سویه‌ن د کمیټي د کارکوونکو هئیت ته کوم چې د بررسي لپاره له ښوونځي څخه کتنه کوي سم شرائط آماده کړي.

☆ښوونکي باید بې له قانوني دلیله غیابت ونلري. غیر قانوني غیابت به دهغه د برطرف کیدو سبب وګرځي.

☆د ناروغتیا له کبله اعظمي تر دریو ورځو با معاشه غیابت دټول تعلیمي کال په دوران کي جواز لري بې لدې چې کوم طبیب دهغه د ناروغي تصدیق کړي وي.

د ناروغۍ د رخصتي اعظمي حد تر شلو ورځو پوري په یوه تعلیمي کال کي جواز لري اوه داسي ناروغۍ په وخت کي د معاش هم مستحق کیدای شي خو پدي شرط چي یو طبیب د هغه ناروغي تصدیق کړي وي. دناروغي هغه رخصتي چې له دوو میاشتو څخه زیاته وي د ښوونکي د برطرفۍ سبب کیږي.

☆د شخصي کارونو په خاطر تر پنځو ورځو پوري غیر حاضري دیوه تعلیمي کال په ترڅ کي جواز لري. که چیري تر پنځلسو ورځو څخه د شخصي کا په خاطر غیابت زیات شي نو دا به د ښوونکي د برطرفي سبب وګرځي.

☆ښځینه ښوونکي تر ٤٠ ورځو پوري د ولادي رخصتي مستحق دي.

ښوونځي اکمالوی چی په هغو کی د سرښوونکو په شمول ۵۵۰۰ ښوونکي معاش اخلي او ۱۵۵۰۰۰ زده کوونکي پکی لومړني تعلیمات زده کوي. دا یوه داسی لویه مؤسسه ده چی دستور العملونو او لارښوونو ته اړتیا لری ترڅو په سمه توګه وچلیږی.

د سویډن د کمیټی لخوا اکمالیدونکو ښوونځیو لپاره دا عمومی دستور العملونه دښوونځیو شاګردانو او کارمندانو لپاره حقوق او وظایف موجوده خالیګاه ډکوي ترڅو د ښوونځیو په اداره کولو او نظارت کی ښه والی راشي.

هدف دا دی چی د افغانستان لپاره د سویډن کمیټی لخوا اکمالیدونکو ښوونځیو کی د ښوونځیو کارمندان په خپلو ورسپارلو شوو دندو کي د مسلکي کارمندانو په حیث رهنمائي شي. همدا راز ددغه سند څخه مقصد د افغانستان لپاره دسویډن د کمیټی لخوا د تعلیم او تربیی د اکمالولو په برخه کی د ښوونی او روزنی ریاستونو او ټولنیو ته معلومات ورکول دی.

د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټي کومک کول په دی شرط دی چي د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټی لخوا د اکمالیدونکو ښوونځیو لپاره عمومی دستور العملونه دښوونځیو د شاګردانو او کارمندانو لپاره حقوق او وظایف ومنل شي. د سویډن د کمیټی لخوا په اکمالیدونکو ښوونځیو کي ټولو ښوونکو ته لازم دي چی ددغو لیکلو شوو اصولو او

## ملازمین(ساتونکی):

ملازمین باید ډیر داعتماد وړ او امانت دار اشخاص وی اوپه دوی کید د نظم او نسق احساس وجود ولری.

یو ملازم د ورځی له خوا له ښوونځی سره همکار وی او بل ملازم د شپي له خوا د ښوونځی خارنه او پهره داری کوی. هغه ملازم چی د شپی له خوا وظیفه اجرا کوی د محل د خلکو له خوا حمایه کیږی. ملازمین باید هڅه وکړي چی د محل له خلکو، ښوونکو او زده کونکو سره ښې اړیکی وساتی، دوی باید ټول زده کونکی په حاضری باندی پابندی ته وهڅوی، او په ښوونځی کی نظم او پاکوالی ته ارتقا ورکړی یو ملازم درخصتیو په ورځوکی هم د ښونځی ساتنه‌په غاړه لري.

## حقونه(حقوق):

☆ملازمین حق لری ترڅو د افغانستان لپاره دسویډن له کمیټی څخه تنخوا لاسته راوړی.

☆ملازمین حق لري چی د تعلیمی کال په اوږدوکی تر ٤٠ ورځو با معاشه غیابت یا رخصتی ولري. پدی شرط چی دا ډول غیابت د سر ښوونکو له خوا مخکی له مخکی تائید شوی وي.

☆ملازمین حق لري تر خو خپلی نظریي یا شکایتونه د تعلیم او تربیی مدیر، د ساحوی دفتر رئیس یا د سویډن د کمیټی عمومی رئیس ته وراندی کړي.

## وظيفي (مکلفيتونه):

هغه ملازم چې د ورځې له مخه وظيفه اجراکوی له سر بنوونکې سره په داسې چاروکې مرسته کوي چې ترینه غوښتنل کيږی، دمثال په توګه د بنوونځی دننه او دباندی شاوخوا پاکول، د پاکو اوبو تدارک کول او د تحويل خانې سم نظم ساتل.

يو ملازم که له خپلې وظيفې بې له کومه دليله غيابت ولري.نو له وظيفې څخه به برطرف کيږی. يواځې د هغه غيابت معاش به ورکول کيږی چې د ناروغۍ په وجه منځ ته راغلی وي.

د يوه کال په اوږدوکې يواځې دری ورځې اعظمي حد غيابت بې لدي چې د ډاکټر تصديق ولری مجاز دی.

په اعظمي حد تر شلو ورځو پورې د ناروغۍ رخصتي د يوه کال په دوران کې جواز لری چې يوه طبيب يې تصديق کړی وی.

هغه د ناروغۍ رخصتي چې تر دوو مياشتو زياته وی.د ملازم د برطرفۍ سبب ګرځی.

ضميمه:

۱:- موافقه: د سويډن د کميټې د بنوونې او روزنې مدير - د بنوونځی سربنوونکی.

۲:- د موافقې فسخه کول

موافقه:

د هغو عمومی دستوالعملو نو په بنیاد:

کوم چې د افغانستان لپار د سویلن د کمیتی د اکمال کیدونکو ښوونځیو په اړه او د ښوونځیو دزده کونکو او کار کونکو د حقونو او مکلفیتونو په اروندوضع شوي.

د E ښوونځی په کلي،

ولسوالي، ولایت کی

د افغانستان لپاره د سویلن د کمیتی له خوا مرسته او حمایت تر لاسه کوی، د ښوونځی کارکونکی موافقه لری چې له هغو مقرراتو سره سم چې په پورتنی سندکی ذکر شوی کار وکړی.

نیټه:

افغانستان لپاره د سویلن د کمیتی له خوا          د ښوونځی له خوا

د ښوونی او روزنی ساحوی مدیر          سر ښوونکی

## د موافقي فسخه کول:

سرله نیټې څخه د افغانستان لپاره د سویډن کمیټې خپله مرسته د E ښوونځی لپاره چې په کلی، ولسوالی، ولایت کې موقعیت لری بنده کړی ده.

د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې له خوا

د ساحوی دفتر دښوونې او روزنې مدیر

قوانینو پیروی وکړی او سرښوونکی مکلف دي چي دا سند لاسلیک کړی.

بنائی چی دسویډن د کمیټی لخوا اکمالیدونکو مکاتبو لپار د عمومی دستور العملونو دمکاتبو د شاګردانو او کارمندانو لپاره د حقوقو او وظایفو د تعبیر په برخه کي شکونه او غلط فهمی را پیدا شي،چی معمولاً د مذاکراتو له لاری واضح او روښانه کیږی. په هر حال په آخرني فرصت کی د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه دا حق ځانته خپلوي چی د موافقی د نشتوالی په بڼه کی د مکاتبو اکمال قطع کړی.

تاریخ: اپریل ۱۹۹۹ د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټی رئیس:

# د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه

د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه په ۱۹۸۰م (میلادی) کال کې د شوروی په تیری پسې د افغانستان څخه د شوروی د قواو د ایستلو او د ملي خپلواکۍ ترلاسه کولو لپاره د افغانستان د خلکو د مبارزې د ملاتړ کولو په مقصد جوړه شوه.

د افغانستان لپاره د سویډن کمیټې د ۱۹۸۲م کال راهیسې د روغتیا، ښوونې او روزنې او کرهنې په چارو کې د افغانستان د خلکو سره د بشر دوستۍ مرستې کړې دي.

د سویډن کمیټه خپلو کومکونو لپاره یوه پالیسي لري چې د یادې شوې کمیټې دغړو او بورډ (رئیسه هیئت) د فیصلې په نتیجه کې منځته راغلې ده. په دې پالیسۍ کې یادونه شوې ده چې د سویډن د کمیټې مرستې د افغانستان په اطرافي (کلیوالي) سیمو کې د غریبو خلکو لپاره دي.

د سویډن د کمیټې په دریځ کې یو غوره اصل دا دی چې د بیلابیلو سیاسي، مذهبي او نژادي ډلو په اړوند په بشپړ ډول بې طرفانه دی. بل اصل ئې دا دی چې ټول فعالیتونه باید داسې طرح شي چې راتلونکی افغاني ټولنه هغه دخپلو امکاناتو او وسایلو په واسطه پرمخ بوځي. د

محلی خلک باید په یوۀ شکل سره په فعالیتونو کي برخه واخلي. د کوښکونو پالیسي تینګار کوي چې د نجونو تعلیمي فرصتونو ته باید خاصه پاملرونه وشي. د ښوونې او روزنې د پروګرام مالي منابع په انفرادي ډول سره د سویډن د خلکو، د سویډن د حکومت او د اروپا له اتحاد ئی څخه عبارت دی، په سویډن کی د ۲۰،۰۰۰ تنو شاوخوا کی په منظمه توګه په افغانستان کی د سویډن د کمیټې د کارکولو په مقصد مرستې کوی. په اوسنی حال کې د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه د ۵۵۰ په شمیر لومړنی ښوونځی په اتلسو(۱۸) ولایتونو کې اکمالوی چې په هغو کې ۱۵۵۰۰۰ تنه شاګردان له تعلیمي موادو او ۵۵۰۰ تنه ښوونکی له معاش څخه کټور کیږی. د ښوونکو روزنه هم د تعلیمي پروګرام یوه مهمه برخه ده. د افغانستان لپاره د سویډن کمیټې د ښوونځیو ۱۵۰ ودانی ابادی کړی دی. د لویانو د سواد زده کړه د ښوونې او روزنې د پروګرام یوه کوچنی برخه شمیرله کیږی.

د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې مرکزی دفتر د پاکستان په پښور کی واقع دی. دری سیمه ایز دفترونه ئی په افغانستان کی د ننه په جلال آباد، غزنی او تالقان کی واقع دی. د سیمه ایزو دفترونو د ښوونې او روزنې هره څانګه یو تن مدیر، دوه تنه د دفت... ۱۶ – ۲۰ په شاوخوا کی د مکتب مشاوران لر... نه شپږو ولایتونو کی د افغا...

روزنې د پروګرا...

## عمومی دستور العملونه:

### د ښوونځی د اکمال لپاره غوښتنلیک ورکول:

پخوا تر هغې چې مکتب د اکمال لپاره په نظر کې ونیول شي باید د سیمه ایزو دفترنو څخه یوه ته غوښتنلیک ورکول شي. څرنګه چې د بودجې د محدودیتونو په نسبت د سویه‌ن د کمیتې لپاره د ښوونځیو د اکمالولو امکانات محدوّد دي، نو هر کال د نوو ښوونځیو د اکمالولو لپاره لږ فرصت موجود دی. د نوو مکاتبو د اکمال لپاره ډیر مهم مشخصات په لاندي ډول دي:

- د ښوونځي فعالیتونه د یوی مودی راهیسي روان وی.
- ښوونځی لومړنی ښوونځی وی.
- ښوونځی په اطرافي (کلیوالی) سیمه کی وي.
- ښوونځی د جنګونو څه د مخه موقعیت کی وی.
- لږ تر لږه، ۷۰ تنه شاګردان مکتب ته حاضریږی.
- نسبتاً تکړه ښوونکي هلته پیدا کیږی.
- مکت[illegible] مؤسسی لخوا نه اکمالیږي.

حق لري.

## ښوونځی:

### لومړني ښوونځي:

هدف:– هدف دا دی چی په افغانستان کی دلومړنیو تعلمیاتو بیا له سره پیل کولو کی مرسته وشی ترڅو ئی په نتیجه کی د زده کړی حاصل کټور او په کار راشي. د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه هڅه کوي چی ښوونځی په داسي ځای کی آکمال کړی چی د جنګ دوختونو څخه د مخه هم هلته مکتب موجود ؤ. تول هغه ښوونځی چی د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه ئی آکمالوی (پرته له کورنیو ښوونځیو څخه) لومړني ښوونځی وي. د دی لپاره چی د ښوونځیو آکمال لا زیات ښه شی، ځنی ښوونځی ضمایم لري لکه د نجونو ښوونځی چی د بل ښوونځی ضمیمه کیدای شی.

### کورني ښوونځی:

د افغانستان لپاره د سویډن کمیټه هڅه کوي چی د نسوانو زده کونکو شمیر زیات کړی. په هغه ځای کي چی د مکتب ودانی شته، پس له ما سپښنینه باید هلته د نسوانو ټولګی جوړ شی، او په دغه ترتیب د مکتب له ودانی څخه په زیاته اندازه ګټه اخیستله کیږی.

کله چی لومړنی ښوونځی په لری ځای کی وي په دی صورت کی د نجونو لپاره کورنی مکتب جوړیدلای شی.

## ټوين (جوړه) ښوونځی:

ځيني ښوونځی د ټوين ښوونځيو په نوم يادېږی چې د سويهٔ د ښوونځيو سره خاص اړيکی لری.

## شاملېدل:

په لومړنی ټولګی کی د شامليدو لپاره د شاګرد عمر بايد اوه (۷) کاله وی. د زده کوونکی د نومونو ثبتول بايد د ښوونځی د تعليمی کال له پيل کيدو څخه يوه مياشت دمخه وشي. هغه زده کوونکی چې د ښوونځی د تعليمی کال له پيل کيدو څخه يوه مياشت وروسته شامليږی بايد مخکی تر شامليدو ئی تعليمی سويه وآزمايله شی. هغه شاګردان چی د لومړنی ټولګی څخه په لوړو ټولګيو کی نيغ په نيغه د شامليدو لپاره غوښتنليک ورکوي هغوی بايد هم مخکی ترشامليدو و آزمايل شي (از سوينه تری واخيستله شی).

## په هر ټولګی کی د زده کوونکو شمير:

په ۱ – ۳ ټولګيو کی د شاګردانو شمير بايد له ۳۰ څخه زيات نشی (دغه شمير د هغو شاګردانو لپاره اټکل شويدی چی تل حاضروی). د ۱ – ۳ ټولګيو د جوړيدو لپاره د شاګردانو شمير لږ تر لږه ۱۵ دی. کله چی

د زده کوونکو شمیر ډیر لږ وی باید دوه ټولګی د څو صنفي په نوم په یو ټولګی کی سره یو ځای شي.

## د ښوونځی کارمندان:

هر لومړنی ښوونځی (چی تر دریم لوړ ټولګی لري) پرته د کوچنیوالی او لوی والی په نظر کی نیولو سره یو سر ښوونکی لري. هر ټولګی یو ښوونکی لري. هر ښوونځی یو ملازم لري. په هغه ځای کی چی ښوونځی وداني لري د شپې لخوا ئي د ساتونکي مسئولیت د خلکو په غاړه دی.

## تعلیمی کال:

تعلیمی کال باید تل ۹ میاشتی یعنی ۲۲۲ ورځی وي. په عادی توګه د ګرمسیرو ښوونځیو تعلیمی کال د سپتمبر د میاشتی د ۵ نیتی څخه د دسمبر د میاشتی تر ۵ پوری وي.

که د هوا حالاتو یا نورو شرایطو په ټاکلی نیټه د مکتب د پیل کیدو باختمیدو مخنیوی وکړ، د زده کوونکو د درس ضایع شوی وخت باید د ورځنیو درسونو د وخت په اوږدولو یا د عمومي رخصتی د وخت په راکمولو سره جبران کړی.

# د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټې لخوا
# د اکمالیدونکو ښوونځیو لپاره
# عمومي دستور العملونه

د ښوونځي د شاګردانو او کارکوونکو حقوق او دندی



۱۳۷۸ هجری شمسي

# د افغانستان لپاره د سویډن د کمیټی لخوا
# د اکمالیدونکو ښوونځیو لپاره
# عمومی دستور العملونه

## د ښوونځی د شاګردانو او کارکونکو حقوق او دندی







۱۳۷۸ هجری شمسي